بِسْمِ اللّهِ الرّحْمَنِ الرّحِيم

## لومړي لمعه (فصل)

**د تجوید د علم تعریف** :

لغوي معني :(اِلاتْيانُ بالجَيِد) يعني په يو ښه شي باندي راتګ مطلب داچي په ښه توګه د قرآنکريم لوستل :

اصطلاحي معني :( هُو اداءُ الحرُوفِ مِن مَخْرجِها الخَاصه لِما مَع جَمِيْعِ صِفاتِها الازِمه وَالْعارِضه بِسُهُولَةٍ بِغَيْرِ كُلْفه )

تجويد په لغت كي ښايسته كولو ته وايي او په اصطلاح كې هر حرف د خپل مخرج نه اداء كول دي سره د ټولو صفاتو بي له څه تكليف او مشقت نه .

د بِغَيرِكُلفِه په اړه علماء داسي فرمايي چي په بعضي وختونو كي د انسان رګونه وپرسيږي او يا يي پوزه وپړسيږي يايي رنګ سور شي چي دا د تجويد د قوانينو څخه خلاف كار دي .

علم التجويد (هُو عِلمٌ يُبحَثُ فِيهِ عَن مَخارِجُ الحُروفِ وصِفاتِها)

علم التجويدعبارت د هغه علم څخه دي چې پكې د مخارجواو صفاتو څخه بحث كيږي

**د علم تجويد موضوع**: ددې علم موضوع د هجاء حروف دي د الف نه تر ياء پوري .

**د علم تجويد مقصد**: د علم تجويد غرص او هدف د قرآنكريم صحيح لوستل دي .

**د علم تجويد فايده** : (اَلفوزُسَعادةُ الدارَينِ) ددواړوجهانونو كاميابي او د الله (ج) رضاء ده

**د علم تجويد حكم** : د علم تجويد زده كړه فرض كفايي ده او عمل ورباند فرض عين دي لكه څنګه چې الله (ج) په سورة مزمل كې فرمايلي دي ( وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا )

ژباړه :قرآن كريم ښه ورو ورو او په پوره اطمنان سره لوله .

تجويد په مطلق ډول د قرآنكريم الفاظ په صحي توګه لوستل دي او علم التجويد عبارت د هغو قوانينو څخه دي چي مجويدينو د علم التجويد لپاره وضع كړيدي .

**دهجا د حروفو مروجه طريقه** :

الف، با ، تا ، ثا ، ج ، حا ، خا ، د ، ذ ، را ، زا ، س ، ش ، ص ، ض ، طا ، ظا ، ع ، غ ، فا ، ق ، ک ، ل ، م ، ن ، و ، هـ ، لا ، ء ، يا ،

**د تجويد د اهميت په اړه له قرآن ، سنت ، او اجماع څخه دلائل**:

**دتجويد د اهميت په اړه د قرآنکريم څخه دلائل** :

۱ـ الّذِينَ آتَينَاهُمُ الْكِتَابَ يَتْلُونَهُ حَقّ تِلَاوَتِهِ (الايه) البقره ۱۲۱

ژباړه : هغه کسان چي هغوي ته قرآنکريم ورکړل شوي دوي يي لولي لکه څنګه چي د قرآن حق دي .

۲ـ وَرَتّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا (الايه) المزمل ۴ (ولولي قرآنکريم په ترتيل سره )

ددي آيت تفسير امام بيضاوي داسي کوي .(اَي جَوِد القُرآنَ تَجوِيدًا) يعني تاسي قرآنکريم ښايسته کړي په ښايسته کولو سره .

همدارنګه حضرت علي کرم الله وجهه ددي آيت په تفسير کي داسي فرمايي .کله چي ورنه پوښتنه وشوه چي (ماالمُرادُ بِاالتَرتِيل ) يعني د ترتيل څخه مراد څه دي (فَقالَ الترتيل هُو التَجويدُ الحروفِ ومعرِفتُ الوُقُف ) يعني د ترتيل څخه مراد د حروفو او وقفونو پيژندل دي

**د تجويد د اهميت په اړه د احاديثو څخه دلائل** :

۱ـ (رُبَ قاري يُقرأُ القُرآنَ وَالقُرآنَ يَلْعَنُهُ) يعني ډير کرته قاري قرآنکريم لولي مګر قرآنکريم بيرته وربانديي لعنت وايي . محدثين فرمايي چي دري کسان ورنه مراد دي .

۱- بي عمله قاري چي په قرآنکرم باندي عمل نه کوي ۲ – هغه شيخ يا مفسر چي له ځانه د قرآنکريم تفسير کوي ۳ـ هغه کسان چي قرآنکريم د تجويد د قواعدوخلاف لولي .

۲ـ (اِن اللّهَ يُحِبُ اَن يَقرأَ القُرآنَ کَما انزَلَ) اخرجه ابوخزيمه فی صحيحه معني دا چي الله تعالي خوښ ګڼي هغه څوک چي قرآن کريم لولي لکه څنګه چي الله تعالي نازل کړي دي .

**دتجوید د اهمیت په اړه له اجماع څني دلائل** :

امام جزري (رح) فرمايي( والاَخذُ بِا التجويدِ حَتمُ لازِمٌ مَن لَم يَجُودِالقُرآنَ اثِمٌ) د تجويد زده كول حتمي او ضروري دي څوک چي قرآن كريم د تجويد سره نه لولي ګنهګاردي .

د فقاؤ له جملي ملاعلي قاري (رح) فرمايي هذا العِلَمُ لاخِلافَ فيه انهُ فرضٌ كفائي وَ العملُ بهِ فرضٌ عينٌ ) په علم تجويد كي اختلاف نشته چي دا فرض كفايي دي لكن عمل په تجويد باندي فرض عين دي .

علامه جلالدين سيوطي (رح) په (الاتيان فی علوم القرآن) کی فر مايي لكه څنګه چي د قرآن كريم معني او مفهوم ضروري او تعبدي بڼه لري همداشان يي په تجويد سره لوستل هم ضروري او تعبدي بڼه لري .

الله تعالي قرآنكريم په اوو طريقو باندي نازل كړيدي لكه څنګه چي رسول الله (ص) فرمايي (اُنزِلَ القُرآنُ علي سَبعةِ احُرُوفٍ)

ژباړه : الله تعالي قرآنكريم په ۷لهجو ، يا ۷ طريقو ، يا ۷ حرفو باندي نازل كړيدي

زمونږ د قرائت امام امام حفص (رح) دي چي ښاغلي په (۹۰) هـ كال په كوفه كي زږيدلي دي او په (۱۸۰) هـ كال كي وفات شوي او استاد يي امام عاصم كوفي تابعي(رح) دي

د جمال القرآن مصنف حكيم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهنانوي (رح) دي جمال القرآن ټولي ۱۴ لمعي ، درسونه او يا فصلونه لري .

**د قرآنكريم د لوستلو طريقي**:

قرآن كريم په څلوروطريقو سره لوستل كيږي چي په دي ټولو طريقو سره يي لوستل جائز دي چي هغه طريقي عبارت دي له :

۱:- **ترتيل** : لكه څنګه چي يو قاري د مجلس د افتتاح لپارتلاوت كوي.

۲:-**حدر** : د ترتيل څخه لږ په تيزي سره لوستل كيږي .

۳:-**تدوير** : لكه څرنګه چي قاريان يي په رمضان كي لولي.

۴:- **تحقيق** : يعني د قرآن كريم ثابت لوستل .

هغه طريقي چي د قرآن کريم لوستل پري جواز نه لري عبارت دي له :

۱:**. تطريب** : يعني قرآنکريم د سندرو په شان لوستل .

۲:**- ترقيص** : (قرآنکريم په سکته لوستل، قرآنکريم د حرف مده په شان لوستل).

۳:**-ترعيد** : قران کريم په داسي طريقي سره لوستل لکه څوک چي يخني نيولي وي .

۴:**- تحزين** : قرآنکريم په داسي شکل سره لوستل لکه په چا چي غم يا مشکل وي

دوهمه لمعه :

**لحن** :

**لحن** : په لغت کي لب يا لهجي ته ويل کيږي چي موروجه معني يي غلطي کول دي . معني دا چي لحن د تجويد ضد ته ويل کيږي يعني تجويد د قرآن کريم صحيح لوستلو ته وايي او لحن د قرانکريم غلط لوستلو ته وايي .لکه په حديث شريف کي راځي

« "**اقرؤوا القرآن بلحون العرب وأصواتها** »مجمع الزوائد ومنبع الفوائد جز۷ صفحه ۸۴

ژباړه : تاسي قرآن د عربو په لب او لهجو باندي ولولي او همدارنګه د هغوي د آوازونو پشان سره يي ولولي .

**لحن په دوه قسمه دي** .

**لحن جلي** : ښکاره غلطي ته وايي او حکم يي حرام دي که په لمانځه کي واقع شي لمونځ فاسدوي .

**لحن خفي** : يعني پټه غلطي کول چي په هغې باندې فقط قاريان پوهيږي لکه د هغه صفاتو پرېښودل چې هغه د کلېمې د ښايست لپاره وضع شوي وي . حکم يې مکروه دي.

**د لحن جلي اقسام** :

لحن جلي په پنځه قسمونه لري چې عبارت دي له :

۱:**- تبديل حرف بالحرف** : د يوه حرف په ځاي بل حرف لوستل .

لکه : د الحمد پرځای الهمد یا د قال پر ځای کال لوستل .

۲:- **تبدیل حرکت بالحرکت** : د یوه حرکت په ځای بل حرکت لوستل.

لکه : مثلاًد" یُوصَلَ " په کلمه کې " یُوصَلُ"دلام حرف دزورپرځای پیش تلفظ شي

۳:- **تبدیل حرکت بالسکون** : د حرکت بدلول په سکون سره .

لکه : د یُوصَلَ پرځاي یُوصَل لوستل چې لام یې ساکن کړ.

۴:- **مخفف حرف مشدد لوستل د یا مشددحرف مخفف لوستل** .

لکه : الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ کي د ر حرف مشدد ونه لوستل شي

۵:-**د یو حرف زیاتول یا کمول** .

لکه : " الْحَمْدُ لِلَّهِ" داسې لوستل " الْحَمْدُولِلَّهِ"دو او حرف څرګندنه کړي.

دریمه لمعه :

**د تعوذ او بسم الله ویلو حکم او محل**

**محل د تعوذ** : د تعوذ محل ابتدآء یا شروع د تلاوت دي او حکم یې سنت دي او بعضې علماء ورته واجب وایې د وجوب دلیل یې لاندې آیت شریف بولي .

**فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ** الایه نحل ۹۸

**د بسم الله محل** : د بسم الله محل ابتدآء د سورة دي او حکم یې سنت دي.

**د قـــرآن کـــریم د لـــوستلو طـریقي** :.

۱:- **ابتداء د تلاوت او ابتداء د سورت** : چې دیته تعوذ او بسم الله دواړه ضروري دي ځکه چې ددې دواړو محلونه موجود دي.

۲:- **ابتداء د تلاوت د سورت په منځ کې** : دلته تعوذ لوستل ضرور دي ځکه چې محل یې موجود دي او د بسم الله په ویلو کې اختیار دي.

۳:- **ابتداء دسورت دتلاوت په منځ کې** : دلته د بسم الله لوستل ضروري دي ځکه چې محل يې موجود دي او د تعوذ په لوستلو کې اختيار دي .

**تعوذ او بسم الله د وصل او فصل له لحاظه ځلور طريقې لري**:

۱:- **وصل کل** : يعنې بسم الله ، اعوذ باالله او سورت په يوه ساه سره لوستل .

۲:- **فصل کل** : يعنې هر يو بيل بيل لوستل کيږي .

۳:- **وصل اول فصل ثاني** : تعوذ او بسم الله په يوه ساه سره ولوستل او سورت په بله ساه سره لوستل چې دا طريقه غير جايزه ده ..

۴:- **فصل اول وصل ثاني** : يعنې تعوذ ځانته ولوستل شي او بسم الله او سورت په بله ساه سره ولوستل شي

د سورت برات په سر کي بسم الله نده ذکر شوي علماء يي ځواب داسي کوي . .

الف: د سورت انفال او سورت برات مضامين سره برابر دي .

ب: د بسم الله د رحمت آيت دي او د سورت برات په سر کې بې زاري ده دالله (ج) او د هغه د رسول (ص) د کفارو څخې نو له دي وجي نه يې د سورت برات په سرکې بسم الله ذکر نه کړه . نو د سورت برات د لوستلو په وخت کې دري حالته جواز لري .

۱- وصل : يعنې آخر د سورة انفال او شروع د سورة برات .

۲- فصل : يعنې دواړه جدا جدا ولوستل شي .

۳- سکته : يعنې ساه قطعه شي خو آواز جاري وي .

**څلورمه لمحه**

**د حـــرو فـو مخـــرجـو نه (مخارج الحروف)**:

**مخرج** : په وزن د مفعل دي چي د وتلو ځاي ته وايي يعني په لغت کي د وتلو ځاي ته ويل کيږي او په اصطلاح کي د کومو ځايونو څخه چي حروف ادآء کيږي هغي ته مخارج ويل کيږي نو بنا په اختلاف ټول مخارج ۱۷ دي .

۱:- امــام فـــراه وايـــي ټـــول مخـــارج ۱۴ دي .

۲:- امــام سبـــويه وايــي ټـــول مخارج ۱۶ دي .

۳:- امام خليل بن احمدوايي ټول مخارج ۱۷ دي .چی همدا غوره مذهب دی .

**د مخارجو ډولونه** :

الف : **مخارج محقق** :هُو جز معين من اجزاء الحلق والسان والشفتين هغه مخرج ته وايي چي د هغي لپاره په حلق ، ژبه او يا شنډو كي يو معين جز وي

ب:- **مخارج مقدر** : د هغه مخرج څخه عبارت دي چي د هغي لپاره كوم معين ځاي نه وي .لكه جوف دهن ( دخولي خليګاه ) ، خشيوم .

د محققه مخرجونو تعداد پنځلس دي او د مقدره مخرجونو تعداد دوه دي مطلب دا چي ټول مخرجونه ۱۷ دي ۱۵ محقق او ۲ مقدر.

**حرف** : تعريف: ( هو صوت يعتمد علي مخرج محقق او مقدر ) د هغه اواز څخه عبارت دي چي اعتماد وكړي په مخرج محقق او يا مخرج مقدرباندي او ټول حروف ۲۹ دي .

**د مخـــارجـــو اصـو ل** :

د مخارجو اصول دري دي چي عبارت دي له :

۱- حلق      ۲- لسان      ۳- شفتين

په حلق كي دري مخرجونه دي چي شپږ حروف ورڅخه اداء كيږي او په لسان كي لس مخرجونه دي چي ۱۸ اتلس حروف ورڅخه اداء كيږي او په شفتينو كي دوه مخرجونه دي چي ۴ څلور حروف ورڅخه اداء كيږي .

**اول مخرج** : د خولي خاليګاه ده چي دري حروف ورڅخه اداء كيږي او هغه عبارت دي له «حروف مده « واو ،الف ،يا »

**دوهم مخرج** : اقصاي حلق دي چي ددي څخه دوه حروف اداء كيږي چي عبارت دي له .«همزه .ها»

**دريم مخرج** : وسط حلق دي چي ددې څخه هم دوه حروف اداء کيږي لکه . « ع ، ح »

**څلورم مخرج** : ادني حلق دي چي ددې څخه هم دوه حروف ادآء کيږي لکه . « غ ، خ »

او دې شپږواړو حروفو ته حروف حلقي يا د اظهار حروف هم ويل کيږي .

**پنځم مخرج** : (ق) کله چې د ژبې بيخ د پاسنۍ وړوکې ژبې سره ولګيږي (ق) ادآء کيږي .

**شپږم مخرج** : (ک)..د ق د مخرج نه لږد خولې طرف ته د (ک) حرف اداء کيږي نو د (ق ،ک) حروفو ته حروف لهاتيه هم ويل کيږي چې لهاة په عربي کې وړوکې ژبې ته وايي

**اووم مخرج** : (ج ،ش، ي ) ..کله چې د ژبې بيخ دپاس تالو سره ولګيږې نو ددې څخه دا درې حروف اداء کيږي مګر يا يکې غير مده (يا )ده چې دې حروفو ته حروف شجريه هم ويل کيږي او شجر په عربي ژبه کې ونې ته ويل کيږي .

د نورو حروفو د مخارجو د بيان نه وړاندې د غاښونو بيان ضروري دي ځکه د باقي حروفو مخارج اکثره په غاښونو پوري تعلق لري .

## د غـاښـو نـو ډ و لـو نـه

ټول غاښونه ۳۲ دانې دي چې ۱۶ په پاسنې ژامه او ۱۶ په لانديې ژامه کې واقع دي چې ثنايا ،رباعيات ،انياب ،ضواحک ، طواحن ،اضراس ،نواجذ ورته ويل کيږي .

ثنايا غاښونه په دوه ډوله دي

الف : **ثنايا عليا** : داپه پاس ژامه کې مخامخ دوه غاښـــونه دي

ب: **ثنايا سفلـې** : داپه لاندنې ژامه کې مخامخ دوه غاښونه دي .

ددې سره په څنګ کې د رباعيات غاښونه دي چې دوه پاس ژامه کې او دوه په لاندينۍ ژامه کې واقع دي .

ددې سره په څنګ کې انياب غاښونه واقع دي چې دوه په پاس ژامه کې او دوه په لاندينۍ ژامه کې واقع دي انياب جمع د نيب ده او نيب سوري کولو ته وايې .

د انیاب سره په څنګ کې ضواحک غاښونه واقع دي چې دوه په پاس ژامه کې او دوه په لانیني ژامه کې واقع دي ضواحک ورته ځکه وايي چې د خندا په وخت کی ښکاري.

د ضواحک سره څنګ کي طواحن غاښونه واقع دي چې شپږ په پاس ژامه کې او شپږ په لاندیني ژامه کې واقع دي .طواحن ورته ځکه وايي چې ډوډی میده کوي .

د طواحي سره په څنګ کې بیا نواجذ غاښونه واقع دي چې دوه غاښونه په پاس او دوه په لاندیني ژامه کې واقع دي چی دا غاښونه د عقلمندو خلکووی .

ثنایا : ۴ دي. رباعیات ۴ دي . انیاب ۴ دي .

ضواحک : ۴ دي . طواحن ۱۲ دي . اضراس نواجذ ۴ دي .

د ضواحک،طواحن ،نواجذ غاښونومجموعې ته اضراس هم ویل کیږي

**اتم مخرج** : (ض)..کله چې د ژبې غاړه (حافة لسان ) د اضراس علیا غاښونو سره ولګیږي نو د ض حرف اداء کیږي د ض حرف نوم اضعص الحروف دي یعنې ترټولوحروفو نه په سختی سره اداء کیږي.

**نهم مخرج** : (ل)..کله چې د ژبې څنګ د ثنایا ،رباعیات، انیاب ،او ضواحکو سره ولګیږي نو د لام حرف اداء کیږي .

**لسم مخرج** : (ن).. د لام مخرج ته نږدې اداء کیږي خو ضواحک غاښونه ورځنې جدادي .

**یولسم مخرج** : (ر) .. دا هم د نون مخرج ته نږدې اداء کیږي فرق پکي دادي چې پدې کې د ژبې شاه برخه لري دې حروفو « ل ، ن ، ر » ته حروف ذلقیه هم ویل کیږي .

**دولسم مخرج** : (ط ، د ، ت)کله چې دژبې څوکه د ثیایا علیا د بیخونو سره ولګیږي نو له دې څخه دري حروف ادآء کیږي چې دې حروفو ته حروف نطعیه هم ویل کیږي

**دیارلسم مخرج** : (ظ ،ذ ، ث) کله چې د ژبې څوکه د ثنایا علیا د سر سره ولګیږي نو دا دري حروف ورڅخه اداء کیږي چې دي حروفو ته حروف لثویه هم ویل کیږي .

**ثوارلسم مخرج** : د ص ، ز ، س ) كله چې دژبې سرد ثنايا سفلې د كناروا و څنګونو او څه اتصال د ثنايا علیا سره ولګيږي نو دا حروف ورڅخه اداء كيږي چې د ي حروفو ته حروف صفريه هم ويل كيږي .

**پيځلسم مخرج** : (ف) ..كله چې د لاندې شونډې خيته د پاسنې شونډې د بهرنې حصې سره ولګيږي د ف حرف ورڅخه اداء كيږي .

**شپاړسم مخرج** : (ب ، م ، و ) دا حروف د دواړو شونډو څخه اداء كيږي چې د ې حروفو ته حروف شفويه هم ويل كيږي .

ب : د بې حرف ته بهري هم ويل كيږي ځكه چې د شونډې د لمدې برخې څخه ادآء كيږي .

م : د ميم حرف ته بري هم ويل كيږي ځكه چې د شونډې د وچې برخې څخه ادآء كيږي .

و : كله چې دواړه شونډې په داسې شكل سره يو ځاي شي چې سره ونه چسپيږي نو د واو حرف ورڅخه ادآء كيږي .

**اوولسم مخرج** : (خشيوم) ..مطلب ورڅخه غنه ده چې د غنې حقيقت د نون مخفي څخه عبارت دي .

**پنځمه لمعه** :

**دحروفو صفات**

**صفت** : په لغت كې ( ماقام بشئ من المعاني ) يعنې د معانيوپه لحاظ چې يو شي په بل شي پورې قائم وي .لكه عالم ـ او سپينوالئ چې د علم تحقق بغير د عالم نه نه كيږي او د سپينوالي تحقق بغير د سپين شي څخه نه كيږي .

په اصطلاح ( الصفة هي كيفِيةُ عارِضَةُ للحرفِ عِندَ حصولهِ في المحرجِ من الهمسِ والجهر ورخوةِ والشدة) يعنې صفت هغه حالت او كيفيت دي چې د حروفو د مخرج نه دحرف د ادآء كولو په وخت كې مخې ته راځي لكه د حرف باريك ، ډك ، مشدد ، يا مخفف لوستل .

**صفات په دوه ډوله دي** : ۱ - صفات لازمه ۲- صفات عارضه

**الف**: **صفات لازمه** : ( لا يقبل الانفكاک في کل حال ) چي په هيڅ وخت کي انفکاک (جداوالي ) نه قبلوي او مجموعه ۱۷حروف راځي

يا عبارت د هغه صفاتو څخه دي چې د حرف نه په هيڅ صورت کې نه جداء کيږي که دا صيفت په حرف کې ادآء نه شي نو حرف په خپل حال نه پاتې کيږي او بل حرف ورڅخه جوړيږي يعني ناقص اداء کيږي لکه : په (ظ) حرف کې د استعلاء او اطباق صفت دې که دا صفت پکې ادآء نه شي نو د ظ حرف نه د( ذ) حرف جوړيږي نو له دې وجهې نه دا صفات په حروفو پورې لازم دي .

**ب**: **صفات عارضه** : هغه صفات دي چې په بعضې حروفو کې په بعضې اوقاتو کې راځي او بعضې اوقاتو کې نه راځې او که چيرته دا صفات ادآء نه شي په حرف کې تغير نه راځي او په خپل حال پاتې کيږي مګر ددې حرف چې کوم زينت او حسن دي هغه ورسره ختميږي ددغې وجهې نه دې صفاتو ته مزينه ،محسنه،محليه ،او عارضه وايي . .

**د لا زمـه صـفـا تـو ا قـسا م** :

لازمه صفات ټول (۱۷ ) قسمه دي چې لس پکې متضاد دي او اوه پکې غير متضاد دي.

لازم متضاد دا معنې چې يو د بل ضد واقع شوي وي معني دا چې پنځه صفات د پنځو نورو صفاتو ضد واقع شي او غير متضاد صفات هغه صفات دي چې ضد نه لري متضاد صفاتو ته متميزه ، ذاتيه او مقومه هم وايي .

کوم لس صفا ت متضاده چې ذکر شول همس د جهر ضد دي يعنې کومو حروفو کې چې د همس صفت موندل کيږي په هغه کې جهر نه راځي همدارنګه شدت د رخوة ضد دي خو ددې دواړو تر منځ يو بل صفت دي چې هغې ته توسط وايې همدارنګه استعلاء د استفال ضد دي او اطباق د انفتاح ضد دي او اذلاق د اصمات ضد دي او صفات غير متضاد باالمقابل ضد نه لري ځکه د هغوي ضد بيان نه شوهمدارنګه صفات غير متضاده ته مزينه ،محسنه او محليه هم وايي . .

۱: **همس** : همس په لغت کې د آواز ټيټ والي ته وايي او د مجويدينو په اصطلاح کې د مهموسه حروفو د ادآء کولو په وخت کې آوازپه مخرج کې په داسې ضعف سر ه

اودرېږي چې نفس جاري وي خو آواز کې يو قسم ته پستې او ټيټوالي وي او په کومو حروفو کې چې د همس صفت موندل کيږي هغو حروفو ته مهموسه حروف ويل کيږي او دا صفت په لس حروفو کې موندل کيږي چې عبارت دي له (فحثه شخص سکت)

۲ :**جهر** : په لغت کې د آواز اوچتوالي ته وايي او په اصطلاح کې ددي حروفو د ادآء کولو په وخت کې آوازپه مخرج کې په داسي قوت سره اودرېږي چې ددې وجهي نه نفس بندېږي او آواز کې يو قسم ته اوچتوالي وي او کومو حروفو کې چې د جهر صفت موندل کيږي دي حروفو ته مجهوره وايي او د مهموسه نه علاوه باقي ټول حروف مجهوره دي چې هغه نولس حروف دي او د همس ضد دي .

۳: **شدت** :. شدت په لغت کې سختوالي ته وايي او په اصطلاح کې ددي حروفو د ادآء کولوپه وخت کې اواز په مخرج کې په داسي سختي او قوت سره اودرېږي چې په دي سره آواز بندېږي او حرف يي قوي او سخت ادآء کيږي او دا صفت په آتو حروفو کې رآځي چې مجموعه يي ده (اجدک قطبت) يا (اجد قط بکت) نو په کومو حروفو کې چې دا صفت راځي هغوي ته شديده وايي .

**توسط** : د شدت او رخوة تر منځ توسط يو صفت دي چې ددې لغوي معنې ده چې په منځ کې واقع کېدل دي او په اصطلاح کې ددې مقصد د شدت او د رخوة منځنۍ حالت دي يعنې ددې حروفو د آدا ء کولو په وخت کې آوازنه دومره سخت وي لکه د شدت غوندې او نه دومره نرم وي لکه د رخوة غوندې يعنې د شديده غوند ې آواز فوراً نه بندېږي او نه د رخوة غوندې آواز بالکل جاري پاتې کيږي. بلکه يو منځنې حالت غوره کوي او دا صفت په پنځو حروفو کې راځي چې مجموعه يي ( لن عمر ) ده او د ي پنځو حروفو ته حروف متوسطه وايي .

۴ : **ر خوة** .. په لغت کې نرمې ته وايي نو د شدت او توسط د حروفو نه علاوه نورټول حروف په نرمۍ سره ادآء کيږي .

۵ : **استعلآء**.. استعلاء اوچتوالي ته وايي نود مستعليه حروفو د اداء کولو په وخت کې د ژبې بيخ پورته تالو طرف ته اوچتيږي چې ددې حروفو مجموعه ده (خص ضغط قظ)

۶: **استفال** :په لغت کې لاندې پاتې کیدلو ته وایي او په اصطلاح کې د مستفله حروفو د اداء کولو په وخت کې د ژبې بیخ د پورته تالو طرف ته نه اوچتیږي د مستعلیه حروفو نه باقي نور ټول د استفال حروف دي.

۷:**اطباق** .. په لغت کې ښه پیوسته کیدلو ته وایې په اصطلاح کې د مطبقه حروفو د اداء کولو په وخت کې د ژبې بیخ د پورته تالو سره پیوسته کیږي او حروف یې دادي (ص،ض، ط،ظ )

۸: **انفتاح** : انفتاح په لغت کې خلاصیدلو او جداپاتې کیدلو ته وایي او په اصطلاح کې د دې حروفو د اداء کولو په وخت کې د ژبې اکثره برخه د تالو سره نه پیوسته کیږي او لاندې جدا پاتې کیږي نو د مطبقه حروفو نه علاوه نور ټول حروف منفتحه حروف دي .

۹: **اذلاق** ..په لغت کې تیزوالي ته وایي او په اصطلاح کې مذلوقه حروف په اسانۍ سره د شنډې یا د ژبې له څنګ څخه اداء کیږي او د ا شپږ حروف دي (فرمن لب )

۱۰: **اصمات** : په لغت کې په معنې د منع کولو سره راځي او په اصطلاح کې ددې حروفو د اداء کولو په وخت کې لږڅه ګراني او سختوالي محسوسیږي نو د مذلقه حروفو نه علاوه نور ټول حروف مصمته دي .

**لازم غیــر متـضـا د ه صــفـا ت** :

۱۱ : **صفیر** .. صفیر د شپېلۍ په معنې سره دي چې حروف یې عبارت دي له (ص ، ز ، س)

۱۲: **قلقله** .. قلقله په لغت کې جنبش او حرکت ته وایي او حروف یې عبارت دي له : ( ق،ط ، ب ، ج ، د ) (قطب جد ) په ق حرف کې قلقله واجب ده چې وشي

۱۳ : **لین** ..په لغت کې نرمۍ ته وایي او په اصطلاح کې دا حروف د اداء کولو په وخت کې ډیر په نرمۍ سره اداء کیږي او دا دوه حرفه دي ( و ، ي ) په هغه صورت کې د لین حرف بلل کیږي چې کله دوي ساکن او ماقبل حرف یې مفتوح وي لکه (خَوْفٌ ، وَالصَّيْفِ

۱۴ : **تفشي** .. په لغت کې انتشار او خپریدو ته وایي او په اصطلاح کې د ش د حرف د اداء کولو په وخت کې اوآز په خوله کې منتشر کیږي کله (الْمَنفُوشِ)

۱۵ : **انحراف** : په لغت کې اوړیدل او مایل کیدلو ته وایي او په اصطلاح کې د منحرفه حرف د اداء کولو په وخت کې اواز د حافه لسان نه رأس لسان طرف ته میلان کوي.چې داقسم غلطي معمولا د ماشومانو نه منځ ته راځي او د انحراف صفت په (ل،ر) کې موجود دي .

۱۶ : **تکریر** . په لغت کې یوشي څو څو واري تکرارولو ته وایي.چې داصفت یوازي د (ر) په حرف کې موجود دي او بس .

۱۷ : **استطالت** : په لغت کې طلب د اوږدوالي ته وایي او په اصطلاح کې د استطالت د حرف د ادآء کولو په وخت کې د مخرج د شروع نه د مخرج تر پایه آواز په تدریج سره اوږدیږي چې حرف یې (ض) دي .

**حروف د قوت او ضعف په اعتبار سره په لاندي ډول دي .**

الف : اقواه حروف ( ط ، ظ ، ق ، ض )

ب : قوي حروف ( ج ، ص ، غ ، ز ، ب ، د ، ر )

ج : متوسط حروف ( ر ، ت ، ذ ، ع ، ک ، ء ، ا ، با ، خا )

د : ضعیف حروف ( س ، ل ، ش ، و ، ي )

هـ : اضعف حروف ( م ، ف ، هـ ، ثا ، حا ، ن )

**شپږمه لمعه:**

**عارضه صفات**

عبارت د هغه صفاتو څخه دي چې کله په حرف کې موجودوي او کله نه وي موجود لکه څنگه یي چې مخکې بیان وشو .صفات عارضه اجمالا په دیارلس ډوله دي

پورتني صفات په دوه ډوله دي

الف : عارض بالصفت ب : عارض بالحرف

د عارض بالصفت څخه مطلب دادي چې هغه صفت عارضه چې د کوم عارضي صفت د وجهې نه پیدا شوي وي مثلا مخکې مونږ وویل چې د خص ضغط قظ څخه علاوه نور ټول حروف باریک لوستل کیږي نو اوس ( الف ، لام ، ر) داسي حروف دي چې همیش باریک نه لوستل کیږي نو په بعضې حالاتو کي ډک هم تلفظ کیږي نو په کومو حالاتوکي چې ډک تلفظ کیږي هلته صفت استعلاء عارض کیږي چې د هغې له وجهې نه دا حرف ډک لوستل کیږي نو په ( الف ، لام ، ر ) حروفو کي تفخیم صفت عارضه دي چې د یو لازمي صفت له وجهې نه پیدا شوي دي .

او عارض بالحرف څخه مطلب دادي چې د یوحرف د یو ځاي کیدوله وجهې نه پیدا کیږي لکه اظهار...چي د نون ساکن او تنوین څخه وروسته یي حروف راشي

**دلازمه متضاده صفاتو جدول** :

| شماره | صفت | حروف | توسط | ضد |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | همس | فحثه شخص سکت | | جهر |
| ۲ | شدت | اجدک قطبت<br>اجد قط بکت | د توسط حروف دا دي<br>لن عمر | رخوة |
| ۳ | استعلاء | خص ضغط قظ | | استفال |
| ۴ | اطباق | ص ض ط ظ | | انفتاح |
| ۵ | اذلاق | فرمن لب | | اصمات |

د

| صفت غیرمتضاده | حـــــــروف |
|---|---|
| صفیر | ص ز س |
| قلقله | قطب جد |
| لین | ي و |
| انحراف | ل |
| تفشي | ش |
| تکریر | ر |
| استطالت | ض |

د صفات الحروف او مخارج الحروف جدول په لاندي ډول سره دي :

| حرف | مخارج الحروف | القاب الحروف | صفات الحروف |
|---|---|---|---|
| ا | جوف دهن ، د خولي د خاليگا نه ادا کيږي | جوفيه | جهر ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ب | د دواړو شونډو د لمدي حصي نه اداء کيږي | شفويه(ف،ب،م،و) | جهر ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ت | دَ ژبې څوکه دثنايا عليا د سرسره لگيږي | نطعيه | همس، ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ث | دَژبې ځوکه ثنايا عليا د سره سره لگيږي | لثويه | همس، ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ج | دژبې د منځ او دمقابل تالو نه ادآء کيږي | شجريه(ج،ش،ی) | جهر ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ح | د وسط حلق نه ادآء کيږي | حلقي | همس،رخوة ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| خ | د ادني حلق نه ادآء کيږي | حلقي | جهر ،شدت ، استعلا ، انفتاح، اصمات |
| د | دژبې څوکه د ثنايا عليا د بيخ سره لگيږي | نطعيه(ط،د،ت) | جهر ،شدت ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ذ | دژبې څوکه د ثنايا عليا د سرونو سره لگيږي | لثويه(ث،ذ،ظ) | جهر ،رخوة ، استفال ، انفتاح، اصمات |
| ر | د نون مخرج ته نږدي خو دژبې شا پکي ده | طرفيه ذلقيه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اذلاق |
| ز | دژبې سر د ثنايا سفلي د بيخونو سره لگيږي | صفريه(ص،ز،س) | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اصمات |
| س | دژبې سر د ثنايا سفلي د بيخونو سره لگيږي | صفريه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اصمات |
| ش | دژبې بيخ د مقابل تالو سره لگيږي | شجريه | همس، رخوة،استفال،انفتاح،اصمات |
| ص | د ژبې سرد ثنايا سفلي د بيخونو سره لگيږي | صفيريه | همس،رخوة،استعلا،اطباق،اصمات |
| ض | دژبې اړخ د اضراس عليا د بيخونو سره لگيږي | حافيه | جهر، رخوة،استعلا،اطباق ،اصمات |
| ط | دژبې څوکه دثنايا عليا د بيخونو سره لگيږي | نطعيه | جهر، شدت،استعلا،اطباق ،اصمات |
| ظ | دژبې څوکه د ثنايا عليا دغاړي سره لگيږي | لثويه | جهر، رخوة،استعلا،اطباق ،اصمات |
| ع | وسط حلق نه اداء کيږي | حلقي | جهر، رخوة،استعلا،انفتاح ،اصمات |
| غ | ادني حلق | حلقي | جهر، رخوة،استعلا،انفتاح ،اصمات |
| ف | دثنايا علي غاړه د لاندي شنډي سره لگيږي | شفويه | همس،رخوة،استعلا،انفتاح ،اصمات |
| ق | دژبې بيخ د بر تالو سره لگيږي | لهاتيه | جهر،شدت،استعلا،انفتاح ،اصمات |
| ک | د ق مخرج نه لاندي د خولي ظرف ته ادآء کيږي | لهاتيه | همس،شدت،استفال،انفتاح،اصمات |
| ل | دژبې طرف د پاس غاښونو سره لگيږي | طرفيه ذلقيه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اذلاق |
| م | د دواړوشنډو د وچي حصي نه ادآء کيږي | شفويه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اذلاق |
| ن | د لام مخرج ته نږدي فقط ضواحک پکي نشته | طرفيه ذلقيه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اذلاق |
| و | د دواړو شنډو د گول کيدلو نه ادآء کيږي | شفويه | جهر، رخوة،استفال،انفتاح،اصمات |
| ه | اقصي حلق نه اداء کيږي | حلقي | همس، رخوة،استفال،انفتاح،اصمات |
| ي | دژبې بيخ د پاس تالو سره لگيږي | شجريه | جهر،رخوة،استفا،انفتاح،اصمات |

## اوومه لمعه :

### د لام د تفخیم او ترقیق حالات :

د لام نه مقصد لفظ د الله (ج) دي او نورتول لامونه باریک او تش لوستل کیږي نو لفظ د الله او اللهم لاندي حالاتونه لري :

۱:- که لفظ د الله او الهم نه مخکې فتحه وه نو دا لفظ ډک تلفظ کیږي

لکه : « هُوَاللّهُ ، نَارُاللّهِ الْمُوقَدَةُ »

۲:-که د لفظ الله او الهم نه مخکې کسره وه باریک اداء کیږي لکه :بِسمِ الله – قُلِ اللهُم

۳:-همدارنګه که د"لام" نه مخکې حرف ساکن وي له هغه مخکې حرف زوریاپیښ ولري پدې صورت کې هم د "لام" توري ډک اداکیږي لکه :« عَلَى اللّهِ ، أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ »

۴:-که "لام" نه مخکې حرف زیرولري یاد "لام" نه مخکې ساکن دهغه مخکې حرف زیرولري ترقیق کیږي یعني "لام" تش اداء کیږي لکه : « قُلِ اللّهُمّ ، وَيُنَجِّي اللّهُ »

## اتمه لمعه :

### د (را) د تفخیم او ترقیق حا لتونه :

را اجمالا دوه حالته لري : الف : تفخیم (ډک لوستل) ب : ترقیق (باریک لوستل)

**د (را)تفخیم حالتونه:**

۱:- را: د "را" توري که چیري زوریاپیښ ولري یاد "را" حرف خپله ساکن مخکې حرف یې زبریاپیښ ولري نوپدې صورت تفخیم کیږي یعني "را" ډکه تلفظ کیږي

.لکه: « رَبُّكَ ، رُزِقُواْ ، مَرْفُوعَةٌ ، عُرُفاً »

۲ :- را مضمومه ، مفتوحه او یا مشدده وي نو پدې صورتو کې هم ډکه لوستل کیږي .

لکه : « رُزِقُوا ، وَرَعْدٌ ، فَفِرُّوا »

۳ : -  را چې کله ساکنه وي او ماقبل يې مضموم او يا مفتوح وي په دي صورت کي هم ډکه لوستل کيږي . لکه :  «  يُرْزَقُونَ  ،  وَبَرْقٌ  ،  وَمَا أُرْسِلُوا  »

۴: - را ساکنه وي او ماقبل يې کسره عارضي راغلې وي نو را ډکه لوستل کيږي

لکه :  «  ارْجِعُوا إِلَىٰ أَبِيكُمْ  ،  ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ  »

۵ : - را ساکنه مخکې ورنه کسره اصلي منفصله راغلې وي نو را ډکه لوستل کيږي .
لکه : « رَبِّ ارْجِعُونِ  »

او کله کسره عارضي هم وي او منفصله هم وي لکه : (  أَمِ ارْتَابُوا ،  إِنِ ارْتَبْتُمْ  )

۶:- را ساکنه وي او ماقبل يې کسره اصلي وي خو وروسته ورځخه په يو کلمه کې د مستعليه حروفو څخه کوم حرف راغلي وي نو دلته هم ډکه لوستل کيږي لکه : مِرصَاد ، قِرطَاس ، فِرقَة ، لبالمِرصَاد ،اِرصَاد آ ، خو مستعليه حرف به مفتوح وي

خو که حرف مستعليه د را څخه وروسته په يوه کلمه کې نه ؤ راغلي نو را باريکه لوستل کيږي  لکه : ( فَاصْبِرْ صَبْرًا  )

۷:-  را ساکنه وي او ماقبل يې هم ساکن وي خوماقبل يې مضموم او يا مفتوح وي نو را ډکه لوستل کيږي لکه : (  الْقَدْرِ  .  الْعُسْرِ  ،  الْأَنْهَارُ  )

**د (را) د ترقيق حالتونه** :

۱:-  چي را مکسوره وي نو باريکه لوستل کيږي لکه :  «  رِحْلَةَ  »

**۲**– "را" ساکنه اومخکې حرف يې اصلي کسره ولري او يا وروسته ورنه حرف مستعليه نه وي راغلي "را" باريکه لوستل کيږي لکه : فِرْعَوْنَ ، «  شِرْعَةً ،  مِرْيَةٍ  »

۳:-  را ساکنه وي ماقبل يې هم ساکن وي او ما قبل يې مکسور وي نو را باريکه لوستل کيږي لکه:  «  قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ ،  وَلَا بِكْرٌ  » خو دا د وقف په حالت کې راځي .

۴:-  را ساکنه وي او ماقبل يې يا ساکنه وي لکه  :  « خَيْرٌ  ،  قَدِيرٌ  »

۵: - را مماله مطلب هغه را چې اماله پکې شوي وي لکه : ( بِسْمِ اللَّهِ مَجْرَاهَا )

**اماله** : په لغت کي میلان ته وايي او د تجوید په اصطلاح کي الف مده د یاي مده طرف ته مایل کیږي اود امام حفص(رح) په نزد په قرآنکریم کي یو ځاي راغلي

اماله په دوه ډوله ده : اماله صغري اماله کبري

په لاندي ځایونو کي اختلاف دي بعضي وايي ډک لوستل کیږي بعضي وايي تش

چي هغه ځایونه عبارت دي له : مِصْرَ ، فِرْقٍ ، عَيْنَ الْقِطْرِ

**د الف د تفخیم او ترقیق حالتونه** :

که چیري د الف څخه مخکې حرف استعلاء راغلي وي نو الف هم ورسره ډک لوستل کیږي لکه : ( خَالِدُونَ ، الصَّالِحِينَ)

همدارنګه په لفظ د الله او اللهم کې هم الف ډک لوستل کیږي او که چیرې د الف څخه مخکې حرف باریک لوستل کیده نو الف هم ورسره باریک لوستل کیږي

لکه : ( النَّاصِرِينَ )

**د حروفو د تفخیم مرتب**

**نهمه لیکچه** :

**د ساکن میم احکام**

۱- ادغام ۲- اخفاء ۳-اظهار

**ادغام** : کچري د ساکن میم نه وروسته بل میم راشي نومیم په میم کي ادغامیږي اودیوه حرکت به اندازه غنه پکې کیږي لکه (وَمِنْهُمْ مَنْ) (كَمْ مِنْ) (لَهُمْ مَغْفِرَةَ

**اخفاء** : کله چي د ساکن میم نه ورسته د (ب) حرف راشي له غني سره اخفاکیږي.

مثال : (هُمْ بَارِزُونَ (كَلْبُهُمْ بَاسِطٌ (إِنَّ رَبَّهُمْ بِهِم

**اظهار** : دادغام او اخفا له حروفو (م،ب) پرته باقي د اخفا حروف دي که له ساکن میم وروسته راشي پکي اظهار کیږي لکه : أَنَّ لَهُمْ جَنَّتٍ ، أَمْ حَسِبْتُمْ ، أَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

**په عمومي ډول د ادغام اقسام :**

دصرفیانوپه اصطلاح کې که دوه همجنس توري په یوه کلمه کې په پرله پسې ډول راشي په داسې حال کې چې لومړي يې ساکن اودوهم متحرک وي نوادغام منځته راځې لومړي توري په دوهم کې مدغم کیږي اوداډول ادغام په دري ډوله دي:

۱ - **ادغام متجانسين :** که دوه توري له یو جنس (یو مخرج ) مخالف صفت په یوه کلمه کې پرله پسي راشي دجنسینوادغام منځته راځي

لکه : قَدْ تَّبَيَّنَ ، اِرْكَبْ مَّعَنَا ، يَلْهَثْ ذَّلِكَ ، وَدَّت طَّآئِفَةٌ

۲ -**ادغام مثلين** :که دوه یوشان توري په یوه کلمه کې په پرله پسې ډول راشي هلته د مثلینو ادغام کیږي :

لکه : إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ ، فَمَارَبِحَت تِّجَارَتُهُمْ ، وَقَدْ دَّخَلُوا ، إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِباً

۳ -**ادغام متقاربين** : که دوه داسې توري په یوه کلمه کي پرله پسې راشي چې مخرجونه يې سره نژدي وي او صفتونه يې سره مخالف وي هلته د متقاربینو ادغام کیږي .

لکه : أَلَمْ نَخْلُقكُّم ، وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْم ، بَل رَّفَعَهُ اللّٰهُ

**ادغام د کیفیت په لحاظ سره په دوه ډوله دي :**

**ادغام تام** : هغه ادغام دي چې کله دوه توري په یو بل کي سره مدغم شي ترادغام وروسته دلومړي تورې هیڅ اثرپاتي نه شي .

لکه : أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا ، مِّن رَّبِّهِمْ

**ادغام ناقص** : ددؤوتوروداسې ادغام چې لومړي ساکن اودوهم متحرک وي ترادغام وروسته دلومړي توري صوت یاآوازپاتې شي لکه مِن وَاقٍ ، مَن يَقُولُ

## د لام تعریف احکام

**لام تعریف دوه احکامه لري**

الف : اظهار ب : ادغام

کله چي د لام تعریف نه ورسته قمري حروف راشي هلته اظهار کیږي .

قمري حروف : (ابغ حجک وخف عقیمه) لکه : ( بِالْبُخْلِ ، الْقَدْرِ ، الْكَوْثَرَ ، الْعَالَمِينَ )

کله چي د قمري حروفو نه غیر نور حروف د لام تعریف نه وروسته راشي هلته ادغام کیږي .لکه : ( التَّوْبَةَ ، الشَّمْسُ ، الرَّحْمٰنِ ، النَّاسِ)

چې دي قسم اظهار ته اظهار قمري او ادغام ته یي ادغام شمسي ویل کیږي

لسمه لوست :

### د ساکن نون اوتنوین احکام:

ساکن نون اوتنوین څلوراحکام لري. ادغام ، اقلاب ، اخفاء او اظهار

**اظهار:** اظهارپه لغت کې څرګندولوته وايي،اودعلم تجويدپه اصطلاح کې ددوه توروجلاکول دي،داسې چې دساکن نون اوتنوين څخه وروسته دحلقي حروفو (ء،ه،خ،ح،ع،غ) څخه یوحرف راشي،ساکن نون یاتنوین ښکاره لوستل کیږي .

لکه :

| | | | |
|---|---|---|---|
| ء ،ا : | يَنْأَوْنَ | مَنْ اٰمَرِهِمْ | كُلٌّ اٰمَنَ |
| ه : | مِنْهُمْ | اِنْ هُوَ | فَرِيقاً هَدىٰ |
| ع : | اَنْعَمْتَ | مَنْ عَمِلَ | سَمِيعٌ عَلِيمٌ |
| ح : | تَنْحِتُونَ | فَمَنْ حَجَّ | حَكِيمٌ حَمِيدٌ |
| غ : | فَسَيُنْغِضُونَ | مِنْ غِلٍّ | قَوْلاً غَيْرَ |
| خ : | اَلْمُنْخَنِقَةُ | مِنْ خَيْرٍ | حَكِيمٌ خَبِيرٌ |

ساکن "ن"هغه دي چې حرکت (زور،زیراوپېښ) ونه لري یعني غړوندي واله "نْ"دي اوتنوین دوه زورونه،دوه زیرونه اودوه پېښونوته وایي.

**ادغام**: ادغام لغوي معني یو شي په بل شي کې داخلولوته وایي. اودعلم تجوید په اصطلاح کې چي کله دساکن نون یاتنوین څخه وروسته د "یرملون" (ي،ر،م،ل،و،ن) دتوروڅخه کوم یوراشي نوهلته ادغام کیږي اوداډول ادغام دوه ډوله دي غنه لرونکي اوبې غني

**الف** : **غنه لرونکي ادغام** : که دساکن نون اوتنوین څخه وروسته دیمنو (ي،م،ن،و) له توروڅخه کوم توري راشي غنه لرونکي ادغام پکې کیږي.

لکه : مَنْ یَهْدي ، مِنْ مالٍ ، قَرارٍمَکِینٍ ، مَنْ وُجِدَ ، یَوْمَئِذٍواجِفَة ، عَنْ نَفْسٍ ، شَيءٍنُکُرٍ.

**ب** : **بې غني ادغام**: که دساکن نون یاتنوین څخه وروسته د لر (ل،ر) کوم توري راشي بې غني ادغام پکې کیږي. لکه : اِنْ لَبِثْتُمْ ، مَتاعاًلَکُمْ ، مِنْ رَبِّکُمْ ، مَثَلاًرَجُلاً.

**اقلاب**: اقلاب په لغت کې یو شي په بل شي بدلولوته وایي اودعلم تجوید په اصطلاح کې که ترساکن نون اوتنوین وروسته د(ب) حرف په کومه کلمه کې راشي نوتنوین یاساکن نون په میم بدلیږي لکه : مِنْ بَعْدِ ، مِمْ بَعْدِ، سَمِیعٌ بَصِیرٌ

**اخفاء** : اخفاء په لغت کې پټولوته وایي اودعلم تجوید په اصطلاح کې داظهار،ادغام اواقلاب له حروفوڅخه پرته دهجاء نوروپنځلسو (ت،ث،ج،د ،ذ ،ز،س،ش،ص،ض،ط،ظ،ف،ق،ک) توروڅخه یوتوري دساکن نون یاتنوین څخه وروسته راشي نودغُنې سره اخفاء پکې کیږي.

| لکه: | | یوه کلمه | دوې کلمې | تنوین |
|---|---|---|---|---|
| ت | : | اَنْتُمْ | وَاِنْ تُبْتُمْ | یَوماًتُرْجَعُونَ |
| ث | : | مِنْ ثَمَرَةٍ | مِنْ ثَمَرَةٍ | خَیرٌثَواباً |
| ج | : | اَنْجَیْنَا | اِنْ جَائَکُم | لِکُلٍّ جَعَلْنا |
| د | : | عُنْدَهُمْ | مِنْ دارِهِم | قِنوانٌ دانِیَةٌ |
| ذ | : | اَنْذِرْهُمْ | مِنْ ذُرِّیَّةٍ | یَتِیماًذَامقرَبَةٍ |
| ز | : | اَنْزَلَ | مَنْ زَکیَّها | نَفساًزَکِیَّةً |

| | | | |
|---|---|---|---|
| س : | اِنْسانٌ | اَن ْسَيَكُونُ | لَيالٍ سَوِيّاً |
| ش : | اَنْشَأْنا | مِنْ شَرِّ | غَفُورٌشَكُورٌ |
| ص : | يَنْصُرُكُمْ | اَن ْصَدُّوكُم | رِيحاًصَرصَراً |
| ض : | مَنْضُودٍ | مِنْ ضَعفِ | قَوماًضالِّينَ |
| ط : | قِنْطارٍ | مِنْ طِينٍ | صَعِيداًطَيِّباً |
| ظ : | اُنْظُر | مَنْ ظَلَمَ | ظِلاًّظَلِيلاً |
| ف : | اَنْفُسَهُمْ | مِنْ فَضلٍ | خالِداًفِيها |
| ق : | يَنْقَلِبُ | مِنْ قَبلِ | سَمِيعٌ قَرِيبٌ |
| ک : | عَنْكُمْ | مَنْ كانَ | قَولاًكَرِيما |

## يوولسمه لمعه :

## مــد :

**مد** : مد په لغت كې اوږدولو او كشكولو ته وايي او په اصطلاح كې په حروف مده او حروف لين باندي د آواز اږدولو ته مد وايي . او حروف مده دري دي (الف ،واو ،يا) كله چې ساكن وي او ماقبل حركت يي د خپل جنس څخه وي لکه «قال ، قالوا ، قيل » اوحروف لين دوه دي (واو ، يا ) كله چې ساكن وي او ماقبل يي مفتوح وي

لكه « مِّنْ خَوْفٍ ، ووَالصَّيْفِ »

**مد په دوه قسمه دي**

الف : مد اصلي ب : مد فرعي

**مد اصلي** : (مالم يوقف بسبب واحد )يعني هغه مد ته وايي چې په كوم سبب باندې ولاړ (موقوف) نه وي يا چي د حرف مده نه وروسته همزه يا سكون نه وي راغلي

لكه « قَالَ ، يَقُولُ ، قِيلَ ، الَّذِي »

**مد فرعي** : هغه مد ته وايي چې په كوم سبب باندې موقوف او ولاړ وي كه چيرې مد فرعي اداء نه شي د حرف ذات ورسره نه ختميږي بلكه د كليمې چې كوم زينت او ښايست دي هغه ورسره له منځه ځي

يا هغه مد دي چي د حروف مده نه ورسته همزه يا سكون راغلي وي لكه : ( وَسَوَاءٌ ، قَالُوا ، آمَنَّا )

**د مد اسباب** :

د مد اسباب مده حروف دي اوهمدارنګه محل يې همزه او سكون دي.

**مد فرعي اجمالا په ځلور قسمه دي**

١ : مد اصلي (واجب)
٢ : مد منفـصل (جائز)
٣ : مـد لازم كليمي مثقل
۴ : مد لازم كليمي مخفف

**مد فرعي تفصيلاپه نهه قسمه دي چې عبارت دي له** :

١ : **مد متصل** : هغه مد ته وايي چې د حرف مده څخه وروسته همزه په يوه كلمه كي راغلي وي لكه : ( شَآءَ ، جَآء ، ألْمَلٓئكَةِ ، سِيئَتْ )

٢ : **مد منفصل** : منفصل مد هغه مد ته وايي چې د حرف مده څخه وروسته همزه په جدا كلمه كې رغلي وي لكه : ( مَآأُنْزِل ، اِنَّآأَوْحَنَآاِلَيْكَ ، قَالُوا آمَنَّا )

٣ : **مد لازم كليمي مثقل** : هغه مد ته وايي چې د حرف مده څخه وروسته په يوه كلمه كي مشدد حرف راغلي وي لكه : ( وَلَاالضَّالِّينَ ، اَلْحَاقَّةُ ، دَابَّةٍ )

۴ : **مد لازم كليمي مخفف** : هغه مد دي چې په يوه كلمه كې د حرف مده څخه وروسته اصلي او لازمي سكون راغلي وي لكه . ( آلْآنَ )

۵ : **مد لازم حرفي مثقل** : عبارت دي هغه مد څخه دي چې په حروف مقطات كي د حرف مد څخه وروسته مشدد حرف راغلي وي لكه . ( المّ )

۶ : **مد لارم حرفي مخفف** : عبارت دهغه مد څخه دي چې په حروف مقطعاتو كي د حرف مد څخه وروسته سكون راغلي وي لكه ( . ن ، ص ، ق )

٧ : **مد لين لازم** : هغه مد ته وايي چې په حروف مقطعاتو كې د حرف لين څخه وروسته سكون اصلي راغلي وي لكه : (كهيعص ،حم ، عسق).

۸: **مد لين عارضي** : هغه مد ته وايي چې د حرف لين څخه وروسته عارضي سکون راغلي وي يعنې د وقف په سبب ساکن شوي وي لکه مِّنْ خَوْفٍ ، وَالصَّيْفِ

۹: **مد عارض وقفي** : هغه مد ته وايي چې د حروف مده څخه وروسته سکون عارضي راغلي وي لکه : ( أَلْعَلَمِينَ )

**د مدونو مقدار يا کيفيت** :

د مد مقدار په دري ډوله دي :

۱- **طول** (يو الف په اندازه) ۲- **توسط** (دوه نيم الفه) ۳- **قصر** (د دريو نه ترپنځو الفو په اندازه)

د مد متصل او مد منفصل مقدار توسط دي چي د توسط اندازه دوه نيم الفه ده او په منفصل کي قصر هم جائز دي چي د قصر مقدار د يو الف په اندازه دي .

لازم کليمي مثقل ، لازم کليمي مخفف ، لازم حرفي مثقل ، لازم حرفي مخفف په دي څلور واړو کي طول کيږي چي د طول مقدار د دري الفو نه تر پنځو الفو پوري دي .

دلين لازم مقدار طول توسط او قصر دي او په عارض لين کي په اوله درجه کي قصر ، توسط او بيا طول کيږي .

**د حروفو ا قسا م** :

الف : **عام حروف** : عبارت د هغه حروفو څخه دي چې د هغې په مفهوم ټول خلک پوهيږي

ب : **مقطعات حروف** : دا هغه حروف دي چې د بعضو سورتونو په سرونو کې راغلي وي او په مفهوم يي يوازي الله تعالي پوهيږي ددي حروفو مجموعه عبارت ده له: (نقص عسلكم حي طهرا) ( ن ، ق ، ص ، ع ،س، ل ، ک ، م ، ح ، ي ،ط،ه ، ر،ا )

په( نقص عسلكم ): کي مد فرعي کيږي او په (حي طهرا )کي مد اصلي کيږي

**دوولسمه لمعه** :

**د همزي قاعدي** :

دهمزي بنيادي اقسام دوه دي . ۱ : تسهيل ۲ : حذف

تسهيل په لغت کي اساني ته وايي او په اصطلاح د مجويدينو کي همزه د خپل مخرج او د الف د مخرج په منځ کي ادآء کولو ته وايي او د حذف معنی ساقطول او لريکول دی

همزه په دوه ډوله ده الف - همزه اصلي ب - همزه زائده

همزه اصلي هغه ده چي په مقابل د (ف، ع ، ل ) کي راغلي وي لکه : امر ، سآل ، قرأ

همزه زائد هغه همزه ده چي په مقابل د (ف ، ع ،ل )کي نه وي راغلي چي په دوه ډوله ده
الف: قطعي همزه ب : وصلي همزه

همزه قطعي هغه همزه ده چي په هر حال کي نه حذفيږي لکه ( الْحَمْدُ ، إِيَّاكَ )

همزه وصليه : هغه همزه ده چي د وصل په حالت کي حذفيږي لکه (وَقَالَتِ الْيَهُودُ)په ټول قرآن کريم کي يو ځاي تسهيل راغلي دي چي په څلورو يشتمه سپاره کي ده

لکه ( أَأَعْجَمِيٌّ ) د حذف مثال ( بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ )

په حورفو کي د ال د تعريف واله همزه وصليه ده او دا د هميشه لپاره مفتوحه ويل کيږي او په اسماءوکي د اوو اسمونو همزي وصلي دي چي نومونه يي دادي

اسم ، ابن ، ابنة ، امرآة ، امرآ ، اثنان ، اثنتان اودا همزي د هميشه لپاره مکسوري وي او په افعالو کي د باب افعال نه غير نوري ټولي همزي وصلي دي او ددي همزي د حرکت متعلق تفصيل دا دي چي چيرته د همزي سره د فعل دريم حرف مضموم (پيښ ولري )وي په ضمه اصلي سره نوبيا ته همزه مضمومه وي لکه اقتلو ، اذخلو اوکه چيرته د همزي سره دريم حرف مکسو(زير ولري ) وي

لکه : ( اضرب ، افعل ، اتقو ، )

**اجتماع همزتين حکم** : (چي دوه همزي يو ځاي راشي )

کله چي دوه همزي يو ځاي راشي دواړه قطعي وي نو دواړه په تحقيق سره اداء کيږي لکه : ( أَأَنذَرْتَهُمْ ) مګر لفظ د ( ءاعجمي ) ورنه استثناء دي په دي لفظ کي په دوهمه همزه کي تسهيل کيږي او د امام حفص په روايت کي چي زمونږ د قرئت امام دي په ټول قرآن کريم يو ځاي تسهيل راغلي دي چي تسهيل واجب ورته وايي .

**همزه تفصيلي په پنځه قسمه ده**

**اول** : چې دواړه همزي متحركي قطعي وي لكه (أأُنزِلَ) نو په تحقيق سره اداء كيږي

**دوهم**: چي دواړه متحركي وي په داسي حال كي چي اوله يي قطعي او دوهمه يي مفتوحه وي دويمه دحركت په وخت كي په حرف مده سره بدليږي لكه (ءالله ،ءالئن)

**دريم** : چي دواړه متحركي وي په داسي حال كي چي اوله يي متحركه قطعي او دوهمه يي ومتحركه وصلي مكسوره وي نو په دي صورت كي دوهمه همزه حذف كيږي او ددي قاعدي مطابق په ټول قرآن كي ٧ لفظونه دي

لكه (افْتَرَىٰ، أَسْتَكْبَرْتَ أَصْطَفَى الْبَنَاتِ اتَّخَذْتُ أَتَّخَذْنَاهُمْ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَسْتَغْفَرْتَ)

**څلورم** : چي اوله همزه متحركه قطعي او دوهمه ساكنه وي نو دوهمه همزه د اولي همزي حركت موفق په حرف مده سره بدليږي لكه ( آمَنَ ، أَيْمَانٌ )

**پنځم** : چي اوله متحركه وصلي او دوهمه ساكنه وي نو په دي صورت كي كه چيري ابتداء د كليمي نه كيږي نو بيا د ابتداء په صورت كي دوهمه همزه د اولي همزي د حركت مطابق په حرف مده سره بدليږي .لكه ( اؤْتُمِنَ ) او كه چيرته ددي كليمي د ماقبل كليمي سره وصل كيږي نو په دي صورت كي همزه وصليه د قاعدي موافق حذف كيږي او دوهمه همزه د اولي كليمي د آخري حرف د حركت موافق په تحقيق سره ويلاي شي لكه (الَّذِي اؤْتُمِنَ السَّمَاوَاتِ ائْتُونِي )

**تنبيه** : په صورت حجرات كي په لفظ د بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ چي په اصل كي بئس الاسم الفسوق وچي په دي كي حذف د همزو وصليو شوي دي او له همزي د ان دوهمه د اسم دريمه د الفسوق نو په دي صورت كي د اجتماع ساكنين په وجه د الاسم واله لام په كسري متحركي شوي دي ځكه چي اساكن اذاحرك حرك باالكسره نو بئس لسم الفسوق ويل كيږي .

د اولي قاعدي حکم تسهيل او د دوهمي قاعدي حکم تسهيل او ابدال او د دريمي قاعدي حذف او د څلورمي قاعدي حذف او ابدال او د پنځمي قاعدي حذف او ابدال دواړه دي

**د الف او همزي تر منځ فرقونه :**

الف هميشه مده وي او همزه هيڅکله مده نه شي راتلاي .

الف هميشه ساکن وي او همزه کله ساکنه او کله متحرکه راځي .

الف نرم او غير له جتکي نه تلفظ کيږي او همزه ساکنه له جتکي سره تلفظ کيږي .

الف د کليمي په سر کي نه شي راتلاي په منځ يا آخر کي راځي خو همزه په سر کي هم راتلاي شي

**ديارلسمه لمعه :**

**وقـــف :**

وقف په لغت کي په معني د ودريدلو او منع کولو سره راځي او په اصطلاح کي داسي تعريف لري(قطع الصوت مع النفس واسکان المتحرک ان کان متحرکا) يعني قطع کول د آواز دي سره د تنفسه معني دا چي ساکن کول د متحرک حرف هغه وخت کي چي هغه متحرک وي .

يا (ترک الحرکة مع الصوت زماناً)ترک کول د حرکت دي سره د اوازه په لږه زمانه کي

**په معرفة الوقوف کي په دوه شيانو باندي بحث کيږي .**

**اول** : کيفيت وقف

**دوهم** : محل وقف

د کيفيت وقف څخه مقصد د وقف کولو طريقه او قاعده پژندنل دي همدارنګه بايد دا هم وپژندل شي چي په کومو کليمو باندي په څه ډول بايد وقف وشي .

او د محل وقف ځخه مطلب دا دي چي د وقف کولو محل او ځاي سړي وپژني يعني چي په کومي کليمي باندي وقف او په کومي کليمي باندي وصل وشي .

**وقف د کيفيت په لحاظ په پنځه قسمه دي** :

اول : وقف بالاسکان　　دريم : وقف بالروم

دوهم : وقف بالاشمام　　ځلورم : وقف بالابدال　　پنځم : وقف بالسکون

**وقف بالاسکان** ديته وايي چي آواز او ساه دواړه قطع شي او موقوف عليه بالکل ساکن شي او دا وقف په دري واړو حرکاتو کي کيږي لکه « الْعَالَمِينَ، نَسْتَعِينُ ، ، مِن نَّذِيرٍ ، قَدِيرٌ »

**وقف بالاشمام** دا وقف صرف په ضمه کي کيږي لکه « نَسْتَعِينُ ، عَلِيمٌ »

**وقف بالروم** د حرکت دريمه برخه ظا هريږي او په هغه کليمه کيږي چي زير ولري

لکه « يَوْمِ الدِّينِ ، مِنَ النَّارِ ، » او په فتحه کي نه کيږي .

**وقف بالابدال** په موقوفه کليمه کي يو حرف په بل حرف باندي بدليږي او دا وقف په دوه ځايونو کي کيږي

الف : دا چي موقوف عليه د دوو زبرو تنوين وي لکه « مَّشْكُورًا ، خَبِيرًا ، بَصِيرًا »

دلته دغه دوه زبره په الف باندي بدليږي او دوهم ځاي دا دي چي موقوف عليه تاي مدوره(گرده ة)وي لکه « مُّطَهَّرَةً ، طَيِّبَةً ، الْبَيِّنَةُ ، الصَّلَوٰة ، وَرَحْمَةً »

دلته دغه گرده ( ة ) په ( ه ) سره بدليږي لکه : (مُّطَهَّرَه، طَيِّبَه ، الْبَيِّنَه ، الصَّلَوٰه ، وَرَحْمَه )

**وقف بالسکون** : دا وقف په هغه وخت کي کيږي چي موقوف عليه د مخکي نه ساکن وي لکه « فَحَدِّثْ ، وَانْحَرْ ، عَلَيْهِمْ »

په قرآنکريم کي ځو کلمات داسي دي چي د هغي په آخرکي الف ليکل شوي دي خو د ا الف نه په وصل او نه په وقف کي لوستل کيږي چي هغه کلمات په لاندي ډول سره دي .

« وَلْيَعْفُوا نور ۲۲،لِّتَتْلُوَاْ عَلَيْهِمُ رعد ۳۰،لَن نَّدْعُوَ کهف ۱۴، لِّيَرْبُوَا روم ۳۹ ، قَوَارِيرَا انسان ۱۵ او ځو نور

**د کلام د تماموالي او نا تماموالي په اعتبار سره وقف په څلور قسمه سره دي**

۱- وقف تام ۲- وقف کافي ۳- وقف حسن ۴- وقف قبیح

**وقف تام** : هغه وقف ته وایي چي په داسي کلیمي سره وقف وشي چي د هغي کلیمي د ما بعد سره نه لفظي اونه معنوي تعلق وي لکه هُمُ الْمُفْلِحُونَ ، هُمُ الظَّالِمُونَ ددي ایت تعلق د مابعد سره نه لفظي اونه معنوي شته ځکه وروسته « إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا» د کفارو حال شروع کیږي او په « الْمُفْلِحُونَ » باندي د مؤمنانو حال ختمیږي

**وقف کافي** : دیته وایي چي په داسي ځاي باندي وقف وشي چي دمابعد سره لفظي تعلق نه وي خو معنوي تعلق وي لکه د سورة بقرة ۶ آیت په آخره چي وقف وشي « أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ – خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ » ځکه چي په (لَا يُؤْمِنُونَ) وقف وشي د مابعد سره یي لفظي تعلق نشته لکن معنوي تعلق یي شته ځکه چي وروسته هم د کفارو بحث دي .

**وقف حسن** : دیته وایي چي په داسي ځاي باندي وقف وشي چي د ما بعد سره یي معنوي تعلق نه وي خو لفظي تعلق یي وي لکه « الْحَمْدُ لِلَّهِ » جمله پوره ده خو د (رَبِّ الْعَالَمِينَ )سره لفظي تعلق لري دي

**وقف قبیح** : هغه وقف ته وایي چي د مابعد سره لفظاًاو معناً تعلق ولري

لکه : وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا ،

**دوقف علامي :**

داډیره ضروري ده چي دقرآنکریم لوستونکي دوقف د نښو اوعلامو پوره خیال وساتي هغه نښي او علامي چي مجویدینو او علماوُ تعین کړیدي عبارت دي له :

ترټولو قوي علامي چي وقف پکي ضروري دي دادي (ط ، ج ، م ، ل ).

**م** : دوقف لازم علامه ده وقف کول ضرور دي په نه کولو یي په معني کي خلل دي

**ط** : دادوقف مطلق نښه ده یعني د وقف کول غوره دي په نسبت د نه کولو .

**ج** : دوقف کافي علامه ده وقف کول غوره دي اونه کول یي جایزدي.

**ز** : دوقف جائز ،حسن علامه ده وقف او وصل دواړه جائزدي خو وصل بهتر دي

**ص** : دمرخص وقف علامه ده که آیت اوږدؤُ لوستونکي ته اجازه ده چي ساه واخلي

**صل** : دلته د وقف په نسبت پیوست لوستل غوره دي .

**ق** : دلته وقف جائز دي خو غوره نه دي .

**صلي** : یعني وصل وکړه

**قف** : دودریدو نښه ده یعني وقف وکړه

**لا**: کچري دا علامه د آیت په اخر کي راغلي وه وقف ورباندي جائز دي مګر که دآیت په منځ کي راغلې وه وقف جائز نه دي ځکه دآیت په منځ کي وقف قبیح دي

**ک**: ( کذالک ) دلته وقف جائز دي خو بهتر نه دي یا (مخکي چي کوم وقف و همغه شان دا هم دي)

**...** : معانقه یعني یوبل ته غاړه ورکول چي پریودریدل اوپربل نه دریدل پکاردي

**قل** : یعني یو ځل وقف وکړه بیا وصل وکړه چي وقفه د دوه الفو په اندازه کیږي

**څوارلسمه لمعه** :

**د غنه، ابتداء ، اعاده ، سکته ،او هاي ضمیر بیان** :

**غنه** :

لکه څنګه چي مخکي تیر شول د خشیوم نه چي کوم آواز خارجیږي هغې ته غنه ویل کیږي اوس غنه په دوه قسمه ده :

الف : غنه آني ب : غنه زماني

د آني او زماني غنې حرف په میم او نون پورې خاص دي

غنه آني د نون او میم لپاره لازمي صفت دي او په هر حال کې پکې موندل کیږي که ته وغواړي او کنه نو دا صفت ستا له ارادي پرته پکې اداء کیږي او غنه زماني ستا له ارادې پرته نه اداء کیږي

غنه زماني په میم او نون کې په بعضې حالاتو کې راځي لکه څنګه چې مخکې د نون ساکن اوتنوین په احکامو کې تیر شول .

**ابتدآء** : ابتداء دیته وایي چې د مابعد څخه شروع وکړي

**اعا ده** : اعاده دیته وایي چې د ماقبل دوباره ولوستل شي ددي پژندل ځکه ضروري دي چې د وقف کولو څخه وروسته په بعضي حالاتو کي قاري د مابعد څخه شروع کوي(ابتدآء) او په بعضي حالاتو کي د ما قبل څخه (اعاده) کوي .

**سکـــته** :

سکته د چوپوالي په معني سره راځي او په اصطلاح کي سکته دیته وایي چي بي غیر دساه اخیستلو څخه آواز د لږ وخت لپاره قطع کول دي .

په ټول قرآنکریم کي د حضرت امام حفص (رح) په روایت څلور ځایه سکته راغلي .

١ : د سورة کهف په اول آیت کي « وَلَمْ يَجْعَل لَّهُ عِوَجًا... »

٢ : د سورة یاسین په ٥٢آیت کي « مِن مَّرْقَدِنَا ...هَٰذَا... »

٣ : د سورة قیامة په ٢٧ آیت کي « وَقِيلَ مَنْ... رَاقٍ »

۴ : د سورة مطففین په ١۴ آیت کي « كَلَّا بَلْ ... رَانَ »

په ٣ او ۴ صورتونو کي د نون او لام ادغام په (را)کي د سکتي له وجهي نه نه کیږي

په ټول قرآنکریم کي ۴ ځایونه داسي راغلي دي چي هلته ص او س لیکل شوي دي خو په بعضي کي(س) او په بعضي کي (ص) او(س) دواړه لوستل کیږي اوهغه لفظونه دادي .

((وَيَبْسُطُ ، بَسْطَةً)): په دي دواړو لفظونو کي د (ص) په ځاي (س )لوستل کیږي .

(( بِمُصَيْطِرٍ)) : په دي کي صرف (ص) تلفظ کیږي

((أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ )): په دي کي د (ص) او (س) دواړوتلفظ جائز دي

اول : بقره ۲۴۵ ، دوهم : اعراف ۶۹ ، دريم : غاشيه ۲۲ ، څلورم : طور ۳۷

**قطــع** :

قطع په لغت کي پري کولو ته وايي او په اصطلاح کي د قرآئت ختمولو ته قطع وايي دا هم د سکتي په شانته د وقف دمتعلقاتو څخه ده .

د وقف او قطعي تر منځ فرق دادي چي په وقف کي د وقف نه وروسته د قرآئت اراده موجوده وي او په قطع کي بيا ورسته د قرآئت اراده نه وي موجوده او په همدغه ځاي سر ه ختميږي نو قطع په داسي ځاي کي کول پکار دي چي يا سورة ختمه شي او يا د سورة په منځ کي يوه واقعه ختمه شي يا په داسي آيت باندي قطع وشي چي د ما بعد سره لفظي او يا معنوي تعلق ونه لري او د وقف په علاماتو باندي قطع جواز نه لري .

**ها ي ضمير**:

هاي ضمير څلور قاعدي لري چي دوي يي د حرکت په هکله دي او دوه نوري يي د صله يا عدم صله په هکله دي

**اول** : که چيري د هاي ضميرڅخه مخکي کسره يا ياي ساکنه راغلي وه نو هاي ضمير مکسور لوستل کيږي لکه (بِهِ إِلَيْهِ) مگر ددي قاعدي څخه څلور کلمات مستثني دي چي په دوه کليمو کي مضموم لوستل کيږي او په دوه نورو کليمو کي ساکن لوستل کيږي سره له دينه چي ما قبل يي مکسور دي په کومو کلماتو کي چي مضموم لوستل کيږي هغه دا دي (وَمَا أنسَانِيهُ) په سورة کهف کي او (عَلَيْهُ اللَّهَ) په سورة فتح کي او په کومو کي چي ساکن لوستل کيږي هغه دا دي (أَرْجِه) او (فَأَلْقِهْ)

**دوهم** : که د هاي ضمير څخه ماقبل نه کسره وه او نه ياي ساکنه نو هاي ضمير مضموم لوستل کيږي لکه (وَأَخَاهُ .رَأَيْتُمُوهُ) مگر ددي قاعدي څخه يوه کلمه مستثني ده چي په هغه کي مکسور لوستل کيږي (وَيَتَّقْهِ) سورة نور کي په دي ها باندي همدغه دوه حرکته راځي يعني کسره او ضمه فتحهورباندي نه راځي

**دريم** : که چيري د ها ضمير نه مخکي او وروسته دواړه متحرک و نو په هاي ضمير کي صله کيږي که ماقبل يي مضموم ؤ نو صله د واو سره کيږ ي او که ماقبل يي مکسور ونو صله د يا سره کيږي لکه (أَفَمَن يَتَّقِي بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ) مګر يوه کلمه ددي قاعدي څخه مستثني ده چي هغه (يَرْضَهُ لَكُمْ) په سورة زمر کي دي سره ددي نه چي ماقبل او مابعد يي دواړه متحرک دي بيا هم صله نه کيږي.

**څلورم** : که د هاي ضمير نه ماقبل او ما بعد دواړه ساکن ويا ما بعد يي فقط ساکن ؤ نو په دي دريو صورتونو کي په هاي ضمير کي صله نه کيږي لکه (مِنْهُ الْمَاءُ ، وَيُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ ) مګر په يوه کلمه کي يعني (فِيهِ مُهَانًا) ددي قاعدي څخه مستثني ده سره ددي چي ماقبل يي ساکن دي خو بيا هم صله کيږي

تمت بالخير

**ليکــــــونکی** : **قاري نــورخبر حليم** د ننګـــر هـــــــــار اسلامی پوهنتون د ليلپی مسـجد امـــام

**تر تيب کوونکی** : **ذکرالله شيـرزی راسپ** د شرعيا تــو پوهنځی د فقهې او قانون څا نګې د څلورم ټولګي محصل

**کال** : ۲۲ /۱۰/ ۱۳۹۱لمـريـز